# بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد الله وحده والصلاه والسلام على من لانبي بعده .

## اول فصل دتجويد مبادي

تجويد په لغت کي تحسين يا ښايسته کولوته وايي . او په اصطلاح کي هر حرف دخپل مخرج څخه سره دټولو صفاتو اداء کول بغير دڅه تکلف نه په ډير اساني سره .

دتجويد تعريف :- دا هغه علم دي چي په دي کي دمخارجواو صفاتو څخه بحث کيږي .

دعلم تجويد موضوع : ددي علم موضوع حروف هجا دي دالف نه تريا پوري .

دتجويد دعلم غرض :- دتجويد دعلم غرض يا مقصد دقران کريم صحيح تلاوت کول دي .

دتجويد دعلم فايده - ددي علم فايده ددواړو جهانوکاميابي اودالله تعالى رضا ده .

دتجويد دعلم فضيلت :- دادټولو علوموڅخه افضل او اشرف دي ځکه ددي تعلق دټولو شيانو څخه بهتر څيز سره دي چي هغه دالله تعالى کلام دي .

دتجويد دعلم حکم :- په قران کريم او حديث نبوي او اجماع امت باندي ثابت دي چي په تجويد سره قران کريم تلاوت کول واجب او ضروري دي او په دي کي هيڅ اختلاف نشته . لکه څرنګه چي الله تعالى په سورت مزمل کي ارشاد فرمايي ( وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا )

ترجمه : قران مجيد ښه ورو ورو او په اطمنان سره لوله .نوپدغه صورت کي کولاي شي چي دتجويد مراعت پکي وکړي .تفسير بيضاوي ددي ايت داسي ترجمه کوي : (وَجَوِدْاَلْقُرْآنَ تَجْوِيْدَا )

يعني قران په تجويد سره لوله دعلي (رض) څخه ددي ايت ترجمه داسي منقول ده ( الترتيل هو تجويد الحروف ومعرفة الوقوف ) .



ترجمه : ترتيل دي ته وايي په تجويد سره دحروفواداء کول او دوقفونو پيژندل او همدارنګه په حديث شريف کي هم ارشاد دي ( ان الله يحب ان يقراء القران کما انــــــزل ) ترجمه : بيشکه الله (ج) ته داخوښه ده يا الله (ج) خوښوي چي قران کريم داسي ولوستلي شي لکه څنګه چي نازل شوي دي .

او داښکاره خبره ده چي قران کريم په تجويد سره نازل شوي دي فقهاء امت مسلمه هم دالله (ج) او دهغه درسول (ص) دحکم په بنا باندي دعلم تجويد حاصلول دهغي په موافق قران کريم لوستل ضروري ګرځولي .

علامه جزري رحمه الله عليه په خپل مشهوره رساله مقدمة الجزريه کي فرمايلي دي ( والاخذ با لتجويد حتم ولازم من لم يجود القران آثم ) ترجمه : په تجويد سره قران لوستل حتمي او لازمي دي او څوک چي

په تجوید سره قران نه لولي هغه ګناهکار دي ( لانه به الاله انـــــــزلا-- وهکذامنه الینا وصلا ) یعني قران په تجوید سره لوستل ځکه ضروري دي چې الله تعالی قران کریم په تجوید سره نازل کړي دي او همدارنګه دا قران دالله تعالی نه مونږه پورې په تجوید سره رارسیدلي دي .

علامه شیخ محمد مکي نصر په خپل کتاب نهایت القول المفید کې فرمایي ( فقد اجتمعت المے معصومه من الخطاء علي وجوب التجوید من زمن النبي (ص) الي زماننا ولم یختلف فیه عن احد منهم وهذا اقوی الحجج ).

ترجمه : بیشکه ټول امت مسلمه پدې باندې اتفاق کړي دي چه تجوید واجب دي دنبي کریم (ص) دزماني نه زمونږتر زماني پورې او پدې کې هیچاهم اختلاف نه دي کړي او دا دټولو څخه مضبوط او قوي دلیل دي یعني پدې کې اختلاف نه کول دټولو څخه قوي دلیل دی .

# ((دترتیل اجزاء ))

دتـــــــــرتیل عمده اوغټ اجزاء دوه دي :(( تجویدالحروف )) (( معرفه الوقوف ))

لکه څرنګه چې لړ مخکې دحضرت علي (رض) په تفسیر کې تېر شو او دترتیل تفصیلي اجزاء آتوته رسیږي .

ځکه چې تجوید الحروف هم په دوه قسمه دي ( مخارج الحروف ) او (صفات الحروف )

بیاصفات الحروف هم په دوه قسمه دي اول (( صفات لازمه )) دوهم (( صفات عارضه )) او معرفه الوقوف هم په دوه قسمه دي اول ((محل وقف )) دوهم (( کیفیت وقف ))

شکل

## دوهم فصل دتجوید اول جزء

مخارج الحروف :- مخرج په لغت کې دوتلو ځاي ته ویل کیږي او په اصطلاح کې دکوموځایونو څخه چې حروف اداء کیږي هغي ته مخارج ویل کیږي بناء په قول مشهورباندې دحروفو مخارج ټول (۱۷) اووه لس دي او دامخارج په دوه قسمه دي ۱.مخرج محقق ۲. مخرج مقدر .

مخرج محقق هغي ته وایي چې دحلق یا لسان یا دشونډو داجزاوو څخه یو معین جزء وي .

او مخرج مقدر هغي ته و ایي چې دحلق ،لسان او شونډو داجزاوو څخه نه وي اوکه وي نو جز معین به نه وي اودا دوه مخرجه دي اول ( جوف دهن ) دوهم ( خیشوم ) او مخارج محقق پنځه لس (۱۵) دي دحلق دمخارجو څخه به شروع وکړو .

حلق په درې برخوویشل شوي دي : اول ( اقصی الحلق یعني کښته برخه دحلق ) دوهم ( منځني یا وسط دحلق ) دریم ( ادنی یعني لوړه برخه دحلق هغه برخه چې خولې ته نیږدې ده ) .

اول مخرج اقصي الحلق : ددې څخه دوه حروف اداء کیږي لکه ( ء ،ها ) .

دوهم مخرج وسط الحلق : ددې نه هم دوه حروف اداء کیږي لکه ( ع ، حا) .

دریم مخرج ادني الحلق : ددی نه هم دوه حروف اداء کیږي لکه ( غ ، خا ) . او دې شپږو حروفوته حروف حلقي وایي چې مجموعه یې په لاندې شعر کې ذکر شوې ده :

حــــــــروف حــــــــلقي شش بود اي باوفا

هـــــــمزه ها وعــــــین وحا غـــــــین وخا

اوس دلسان مخرجوته راځو چې په لسان کې لس (۱۰) مخارج دي .

څلورم مخرج: اقصاي لسان یعني دژبې بیخ چې دمقابل تالو سره ولګیږي ددې نه (ق) اداء کیږ ي

پنځم مخرج : داهم اقصاي لسان دي خود (ق) دمخرج نه لږ لاندې خولې طرف ته ددې نه ( ک ) اداء کیږي . دې دواړو حروفوته (ق،ک) حروف لهاتیه یا لهویه وایي، لهات هغه ژبکۍ ته وایي کوم چې په حلق پورې زوړنده وي نو ددې دواړو حرفونو تعلق لهات سره دې ځکه ورته لهاتیه وائي .

شپږم مخرج : دژبې مینځ چې دمقابل تالوسره پیوست شي ددې نه درې حروف اداء کیږي لکه ( ج،ش، ی ) . ي غیر مده یعني یاي لین او یاي متحرک اداء کیږي او دې درې واړه حروفو ته حروف شجریه وایي . شجر ددواړوژامو ترمینځ چې کومه خالیګاه ده هغې ته وایي .

مخکې ددې نه چې اووم مخرج ذکر کړو باید دغاښونو نومونه وپیژنو ځکه چې راتلونکي مخارج دغاښونو سره تعلق لري .

په عام طور سره دانسان دوه دیرش ۳۲ غاښونه وي مخکني څلور غاښونوته ( دوه پورته دوه کښته ) ثنایا وایي پورتني دووته یې ثنایاي علیا وایي او لاندني دووته یې ثنایاي سفلی وایي .

ددې په څنګ کې څلورغاښونه نوردي چې هغې ته رباعیات وایي .

درباعیاتو په څنګ کې څلور نور غاښونوته انیاب وایي او کواسر هم ورته وایي دانیابو په څنګ کې دوه پورته دوه لاندې څلور غاښونوته ضواحک وایي . دضواحکو په څنګ کې دوولس (۱۲) چې شپږ پورته او شپږ لاندې دي دیته طواحن وایي صرف همدغه طواحن (۱۲) دي نورټول څلورڅلوردي او دطواحن په څنګ کې څلورآخرني غاښونه دي چې هغي ته نواجذ وایي دغه درې قسمه آخرني غاښونه ( ضواحک ، طواحن ، نواجذ چې مجموعه یې (۲۰) غاښونه کیږي دیته اضراس وایي .

لاندې دغاښونو خلاصه ذکر کیږي :

ثنایا ......................... څلور (٤)

رباعیات ................... څلور........(٤)

انیاب ....................... څلور........(٤)

اضراس:
- ضواحک .................. څلور........(٤)
- طواحن ................ دوولس........(١٢)
- نواجذ ...................... څلور........(٤)

اووم مخرج :- کله چي اقصي حافه لسان داضراس علیا دبیخونو سره ولګیږي ددي نه (ض) اداء کیږي دښي طرف څخه وي او که دچپ طرف څخه وي ، خودچپ نه اسانه اداء کیږي نسبت ښي طرف ته ، ددواړو طرفونونه په یو ځل هم اداء کیږي خوداډیر مشکل کاردي اودي حرف ته حافیه وایي .حافه دژبې اړخ ته وایي .

اتم مخرج :- ادني حافه مع طرف اللسان کله چي دثنایا ربعیات انیاب او ضواحک بیخونوسره ولګیږي ددي نه (ل) اداء کیږي ښي طرف نه وي که چپ طرف نه وي خودادښي طرف نه اسانه اداء کیږي او ددواړوطرفو نه په یو ځل هم اداء کیږي .

( تنبیه ) د(ض) مخرج دحافي هغه برخه ده چي دحلق طرف ته نږدي ده او دي ته اقصي حافه وایي .د(ل) مخرج دحافي دهغې برخي نه اداء کیږي کوم چي دخولي طرف ته ده او دیته ادني حافه وایي او همدارنګه د(ل) په اداء کولوکي دژبې څوکه هم دغاښونو سره لګیږي مګر د(ض) داداء کولو په وخت کي دژبې څوکه دغاښونو سره بلکل نه لګیږي .

نهم مخرج :- دژبې څوکه سره دادني حافه کله چه دثنایا ، رباعیات ، انیاب بیخونو سره ولګیږي ددي نه (ن) مظهره ( هغه نون کي چي اظهار کیږي ) اداء کیږي .

لسم مخرج :- دژبې څوکه او دثنایا او رباعیات بیخونه ددي څخه (ر) اداء کیږي البته دي کي پشت زبان هم داخل دي یعني ددي داداء کولو په وخت کي ژبه شاطرف ته میلان کوي او دنون مخرج ته نژدې دي خو دومره خبره ده چه دنون مخرج داداء کولو په وخت کي دژبې څوکه دتالو هغي حصې ته میلان کوي کوم چي شونډوته نیژدي دي او د (ر) داداء کولو په وخت کي دژبې څوکه دتالو هغه حصې ته میلان کوي کوم چي حلق طرف ته نیژدې وي ( ل،ن،ر) دي دري واړو حروفوته حروف طرفیه او ذلقیه وایي طرف او ذلق دواړه په معني دکنار ې سره راځي .

یوولسم مخرج :- د ( ط،د،ت) مخرج دي کله چي دژبې څوکه دثنایاعلیا دبیخونو سره ولګیږي ددي څخه دا دري واړه حروف اداء کیږي او دي حروفوته حروف نطعیه وایي .

دوولسم مخرج :- دژبې څوکه او دثنایا علیا هغه کناره چې د وریوسره پیوست دي ددي نه ( ظ ، ذ ،ث ) اداء کیږي دي درى واړه حروفوته حروف لثویه وایي لثه وریو ته وایي .

دیارلسم مخرج :- دژبې څوکه دثنایا علیا او سفلی دروني یا داخلي کناري ددې څخه (ص.س،ز) اداء کیږي مګر دژبې څوکه دکناروسره نه لګیږي دژبي څوکه او دکنارو ترمینځ لږ غوندې خلا باقي پاتي کیږي البته دثنایا علیا کناري او دثنایا سفلی کنار ي لږ غوندي یو له بل سره پیوست کیږي او که داپیوست نه شي نود صفیر صفت نه اداء کیږي او دي دري واړو حروفو ته حروف اسلیه او صفیریه وایي .اسله دژبې هغه نري څوکي ته وایي .

څوارلسم مخرج :-د(ف) مخرج دي کله چې دثنایا علیا څوکي دلاندیني شونډو دلمدي برخي سره ولګیږي ددې نه (ف) اداء کیږي .

پنځه لسم مخرج:- دواړه شونډي دي ددي څخه ( ب ،م ، و ) غیر مده اداء کیږي صرف فرق دومره دي چې (ب) دشونډو دلمدي برخي څخه اداء کیږي او (م) دشونډو دوچې برخي څخه اداء کیږي او (و) ددواړو شونډو دناتمام یو ځاي کیدو څخه اداء کیږي .

دې څلورواړو حروفوته حروف شفویه وایي .

## دمخارجو دوهم قسم مخرج مقدر

لکه څرنګه چې دمخرج مقدر تعریف بیان شو هغه دا چې مخرج مقدر هغي ته وایي چې دحلق یا لسان یا شفے داجزاوڅخه یومعین جزء نه وي.او مخرج مقدر دوه دي . اول خیشوم یعني دپزې اخري حصه خیشوم دحلق ،لسان او شفے داجزاء ونه کوم جزء ندي جوف دهن اګر چې جزء دي خوجزءمعین نه دي

شپاړسم مخرج :- جوف دهن دي ددي نه  دري حروف اداء کیږي ( واو، الف ، یا)  کله چې مده وي الف دحلق دجوف نه اداء کیږي .

واو دشونډودجوف نه اداء کیږي . او (یا ) دوسط لسان او تالو دجوف نه اداء کیږي د دي دري واړه حروفو انتها په هوا باندي کیږي .

یعني ددي اواز دباقي حروفو غوندي دحلق ، لسان شفتین داجزاءو په کوم جزء باندي نه اودریږي بلکه په هواکي خوریږي او ختمیږي . او دي دري واړو حروفوته حروف جوفیه ، مده ،او هوایه ویل کیږي . جوفیه ځکه ورته وایي چې دجوف نه اداء کیږي .هوایه ځکه ورته وایي چې ددوي انتها په هواباندي کیږي ، مده ځکه ورته وایي چې دمدیت صفت پکي موجود دي .

اووه لسم مخرج :- دغه مخرج دخیشوم دي ددي نه غنه اداء کیږ ي دلته دغني څخه نون مخفاے او نون مدغم به ادغام ناقص دي . داخفاء او دادغام بحث به وروسته ان شاء الله راشي .

دالف او همزه ترمینځ فرقونه :-

دالف او همزه ترمينځ ځلور فرقونه موجود دي .

١، الف هميشه مده وي او همزه هيڅ کله مده نشي کيدلاي .

٢، الف هميشه ساکن وي او همزه کله ساکنه او کله متحرک وي .

٣، همزه ساکنه دجټکي سره تلفظ کيږي او الف نرم بغير دجټکي تلفظ کيږي .

٤،الف دکلمي په اول کې نشي راتلاي بلکه په مينځ يا اخر کي راځي او همزه دکلمي په سر ،مينځ او پاي کي راتلاي شي ( په ټولو ځايونو کي راتلاي شي ) دکلمي په سر کي چي کومه همزه راغلي وي هغه دالف په شکل ښودل شوي وي خوداهمزه ده ، الف دکلمي په سرکي بلکل نه راځي .

دالله تعالي په فضل سره مخارج الحروف پاي ته ورسيدل مخکي ددي چي دتجويدالحروف په دوهم جزء يعني صفات الحروف باندي شروع وکړو پکارده دچي دلحن په تعريف او اقسامو پيل وکړو ځکه مونږ دهر حرف مخرج وپيژانده که موږ حرف دخپل مخرج نه اداء نه کړو معني کي يي بدلون او تغير راځي .

## دلحن اقسام اود هغې حکم

لحن دتجويد ضد دي يعني تجويد قران صحيح لوستلو ته وايي او لحن دقران کريم غلط لوستلوته وايي مثلاً حرف دخپل مخرج نه نه اداء کول يا دهغي صفت لازمه يا صفت عارضه نه اداء کول يا په حرکات او سکنات کي غلطي کول دارنګه غلطي کولوته لحن ويل کيږي .

لحن په دوه معني ګانو باندي استعماليږي . يو په معني دلب ولهجه لکه څنګه چي حديث شريف کي راځي ( اقرءوا القرآن بلحون العرب واصوتها ) ترجمه : تاسوقران دعربو په لب ولهجو باندي ولولي او دهغوي په اوازونو باندې ) او دلحن بله معني ده غلط لوستل .

کله چي لحن دتجويد په مقابل کي استعمال شي نو په معني دغلطي سره راځي .

لحن په دوه قسمه دي ( لحن جلي ) او ( لحن خفي )

لحن جلي ښکاره غلطيوته ويل کيږي او دا په پنځه قسمه دي :

١، تبديل الحرف بالحرف : يعني ديو حرف پرځاي بل حرف لوستل لکه ( الحمد )پرځاي په ( الهمد )لوستل يا دالقدر پرځاي (الکدر ) لوستل يا د (عليم ) پرځاي ( اليم ) لوستل يا د ( مصلحون ) پرځاي ( مسلهون ) لوستل .

٢،يوحرف زياتول ياکمول مثلاً :د( لم يلد) پرځاي ( لم يالد ) لوستل اود ( لم يولد ) پرځاي ( لم يُلد ) لوستل او په اول مثال کي الف زياتول او په دوهم مثال کي دلم يولد څخه واو کمول .

٣، تبديل حرکت بالحرکت يعني ديو حرکت پرځاي بل حرکت لوستل مثلاً : دزبر پرځاي پيښ لوستل يا دضمه پرځاي فتحه يا کسره لوستل لکه : إنعمتِ پرځاي انعمتُ لوستل ياد ختم اللهُ پرځاي ختم اللهِ لوستل

٤، تبدیل حرکت بالسکون یا تبدیل السکون بالحرکت مثلاً : خَلَقْنَا  پرځاي خَلَقَنَا لوستل .

٥،مشدد مخفف او مخفف مشدد لوستل مثلاً : مُسْتَمِرّ ُ پرځاي مُسْتَمِرُ بغیر دشدنه لوستل .

اولحن جلي پنځه قسمونه لري اوددي حکم حرام دي ځکه جي په کلام الله کي تحریف دي ددي حروف تغیر او تبدیلیږي او معني هم ورسره بدلیږي او بعضي او قات پداسي غلطیو سره لمونځ هم فاسدیږي نو دداسي غلطیوڅخه ځان ساتل ډېر ضروري دي .

دو هم قسم لحن خفي :دلحن خفي معني ده پټه غلطي داهغه غلطیوته ویل کیږي چې هغه صفات نه اداء کول کوم چې دحروفو دتحسین او زینت سره تعلق لري اګرچې حروف دخپل مخرج نه ښه پوره اداء شي کوم کمي او زیاتي پکي ونه شي خوهغه  صفات چه حرف ورسره مزین کیږي هغه نه اداء کول چې هغه ته صفات عارضه وایي او دصفاتو عارضه وو تفصیل به وروسته ان شاءالله راشي . مثلاً (را) چې کوموحالاتو کي پر   یا مفخم تلفظ کیږي هغه مفخم نه اداء کول یا اخفا یا غنه نه کول یا مد نه کول . خلاصه دا چې ( صفات لازمه صحیح نه اداء کولوته لحن جلي وایي ) او د ( صفات عارضه وو صحیح نه اداء کولوته لحن خفي وایي ) اګر چې په لحن خفي په معني کي کوم بدلون نه راځي خودحروفو کوم زینت چې دي هغه له منځه ځي او ددې نه ځان ساتل هم ضروري دي او ددې حکم مکروه دي .

## دتجوید دو هم جزء (صفات الحروف )

صفات دصفت جمعه ده او صفت په لغت کي داسي تعریفوو .

(ماقام بشي ءٍ من المعاني ) . یعني دمعانیو په لحاظ یوشي چه دبل شي پورې قایم وي . لکه علم او سپین والي : پس دعلم تحقیق بغیر دعالم څخه نه کیږي او دسپین والي تحقیق بغیر دسپین شي څخه نه کیږي .

او په اصطلاح کي دصفت تعریف : صفت هغه  حالت او کیفیت دي چه دحروفو دمخرج نه د اداء کولو په وخت کي مخي ته راځي مثلاً دحرف پُر لوستل یا باریک لوستل یا سخت یا نرم لوستل او داسي نور .

صفات په دوه قسمه دي ( صفات لازمه ) او صفات عارضه  )

١، صفات لازمه : هغه صفات دي چي دحرف نه بلکل نه جداکیږي که داصفت په حرف کي اداء  نشي نوحرف په خپل حال نه پاته کیږي بلکه ددي نه بل حرف جوړیږي یا غیر عربي حرف ورڅخه جوړیږي یاناقص اداء کیږي مثلاً په (ظ) کي داستعلاء او اطباق صفت دي که دا صفت پکي اداء نشي نو (ظ) څڅه (ذ) جوړیږي . دغي وجهي نه داصفات حروفو پوري لازم دي اودي صفاتوته ممیزه ،مقومه،  ذاتیه ، او ضروریه هم وایي ذاتیه او مقومه ځکه ورته وایي چې  که چیري دا اداء نشي نو دحرف ذات باقي نه پاتي کیږي او حرف کامل نه اداء کیږي .اوممیزه ځکه و رته وایي چې دیو مخرج حروف یو دبل څخه جدا جدا اداء کیږي .

٢، صفات عارضه هغه صفات دي چې په بعضي حروفو کي په بعضي اوقاتوکي راځي او په بعضي او قاتوکي نه راځي اوکه چیري داصفات اداء نه شي په حروفوکي څه تغیر نه راځي په خپل حال پاتي کیږي

مګر ددي حرف چه کوم زينت او حسن دي هغه ورسره ختميږ ي ددغي وجهي نه دي صفاتو ته مزينه ، محسنه ، محليه او عارضه وايي مزينه او محسنه او محليه دا دری واړه په معني دزينت ورکوونکي راځي او عارضه دا معني چي داصفت دحرف پوري لا زم ندي کله پکي وي او کله نه وي . لکه څنګه چي مخکي بيان شو دلحن په اقساموکي او که داصفات اداء نشي نو لحن خفي صورت نيسي .

## دريم فصل ( دصفات لازمه اقسام )

صفات لازمه ټول په (۱۸)قسمه دي چي لس يکي متضاده او (۸) يکي غير متضاده دي متضاده دامعني چي يو دبل ضد واقع شوي وي يعني پنځه صفات دپنځو نورو ضدواقع شي او غير متضاده هغه صفات دي چه ضد نلري لاندي جدول وګوري :

صفات لازمه متضاده

| | | |
|---|---|---|
| ۱، همس | | ۲ ، جهر |
| ۳ ، شدت | توسط | ۴ ، رخوة |
| ۵، استعلاء | | ٦ ، استفال |
| ۷ ، طباق | | ۸ ، انفتاح |
| ۹، اذلاق | | ۱۰،اصمات |

صفات لازمه

غير متضاده

| |
|---|
| ۱۱صفير |
| ۱۲ قلقله |
| ۱۳ لين |
| ۱٤ انحراف |
| ۱٥ تکرير |
| ۱٦ تفشي |
| ۱۷ غنه |
| ۱۸ استطالت |

په مختصر ډول دصفاتو ذکروشوچي وروسته به ان شاء الله تفصيلاً ذکرشي کوم لس صفات متضاده چه ذکر شو همس دجهر ضد دي يعني کومو حروفو کي چي دهمس صفت موندل کيږي په هغوکي جهر نه راځي همدارنګه شدت درخوة ضد دي خو ددي دواړو ترمينځ يو بل صفت دي چي هغي ته توسط وايي همدارنګه استعلاء داستفال ضد دي او اطباق دانفتاح ضد دي او اذلاق داصمات ضد دي .

اوصفات غير متضاده بالمقابل ضد نلري ځکه دهغوي ضد بيان نشو .

۱، همس : همس په لغت کي داوازټيټ والي ته وايي .

او د مجودينو په اصطلاح کي دمهموسه حروفو داداء کولو په وخت کي آواز په مخرج کي پداسي ضعف سره او دريږي چه نفس جاري وي خوآواز کي يو قسم ته پستي او ټيټ والي وي او په کومو حروفو کي چه دهمس صفت موندل کيږي هغو حروفو ته مهموسه ويل کيږ ي او دا صفت په لس حروفو کي موندل کيږي چي مجموعه يي ( فحثه شخص سکت ) دي .

۲، جهر : جهر په لغت کې دآواز اوچت والي ته وايي او په اصطلاح کې ددي حروفو داداء کولو په وخت کې آواز په مخرج کې پداسي قوت سره اودريږي چي ددې وجهي نه نفس (ساه ) بنديږي او آواز کې يوقسم ته اوچت والي وي او کومو حروفو کې چه دجهر صفت موندل کيږي دي حروفو ته مجهوره وايي او مهموسه نه علاوه باقي ټول حروف مجهوره دي چه هغه (۱۹) حروف دي او دهمس ضد دي .

۳، شدت : شدت په لغت کې سختي والي ته وايي او په اصطلاح کې ددي حروفو د اداء کولو په وخت کې آوازپه مخرج کې پداسي سختي او قوت سره او دريږي چې پدي سره آواز بنديږي او حرف قوي اوسخت اداء کيږي او داصفت په (۸) حروفو کې راځي چې مجموعه يي ( اجدک قطبت ) دي او په کومو حروفو کې چه داصفت راځي هغوي ته شديده وايي .

(توسط ) دشدت او رخوت ترمينځ توسط يو صفت د ي چه ددي لغوي معني ده درميان کې واقع کيدل او په اصطلاح کې ددي نه مقصد دشدت او رخوت درمياني حالت دي يعني ددي حروفو داداء کولو په وخت کې آواز نه دومره سخت وي لکه دشدت غوندي او نه دومره نرم وي لکه درخوت غوندي يعني دشديده وغوندي اوازفوراً نه بنديږي او نه د رخوت غوندي آواز بلکل جاري پاتي کيږي بلکه يو درمياني حال غوره کوي او داصفت په پنځوحروفو کې راځي چه مجموعه يي ( لن عمر ) دي او دي پنځو حروفو ته حروف متوسطه وايي .

٤، رخوے : رخوے په لغت کې نرمي ته وايي او په اصطلاح کې درخوے حروفو داداء کولو په وخت اواز په مخرج کې پداسي نرمي سره اودريږي چه دهغي وجهي نه اواز جاري پاتي کيږي دشديده او متوسط حروفو نه علاوه باقي ټول حروف رخوے دي .

٥، استعلاء : استعلاء په معني د اوچتيدلو راځي دلغت په بناء او په اصطلاح کې دمستعليه حروفو داداء کولو په وخت کې دژبې بيخ پورته تالوطرف ته اوچتيږي چه پدي وجهي سره دا حروف مفخم (پر ) اداء کيږي او دا (۷ ) حروف دي چه مجموعه يي ( خص ضغط قظ ) دي او په کومو حروفو کې چه داستعلا ء صفت موندل کيږي هغي ته مستعليه وايي .

٦، استفال : استفال په لغت کې لاندي پاتي کيدلو ته ويل کيږي .

او په ا صطلاح کې دمستفله حروفو داده کولو په وخت کې دژبې بيخ بره تالوته نه اوچتيږي بلکه لاندي پاتي کيږ ي چه ددي وجهي نه داحروف باريک اداء کيږي دمستعليه حروفو څخه سواباقي ټول حروف مستفله دي . داستفال صفت چه په کومو حروفو کې راځي هغي ته مستفله وايي .

۷، اطباق : اطباق په لغت کې ښه پيوسته کيدلو ته وايي او په اصطلاح کې دمطبقه حروفو داداء کولو په وخت کې دژبې اکثره حصه يعني دژبې مينځ پورته تالو سره پيوسته کيږي چه له دي کبله دا حروف ښه مفخم (پر) اداء کيږي او په کومو حروفو کې چې داصفت پيداکيږ ي هغه حروفو ته مطبقه وايي او داڅلور حروف دي ( ص ،ض، ط،ظ)

۸، انفتاح : انفتاح په لغت کې په معني دخلاصيدلو او جداپاتي کيدلو راځي او په اصطلاح کې دمنفتحه حروفو داداء کولو په وخت کې دژبې اکثرحصه يا بيخ پورته تالو سره نه پيوسته کيږي بلکه د هغي څخه

جدا پاتي کيږي چې له دي کبله دا حروف پر نه اداء کيږي بلکه باريک اداء کيږي او په کومو حروفو کي چې دانفتاح صفت موندل کيږي هغه حروفوته حروف منفتحه وايي دمطبقه حروفو څخه علاوه باقي ټول حروف منفتحه دي .

۹، اذلاق : اذلاق په لغت کي په معني دتيزوالي راځي او په اصطلاح کي مذلقه حروف دشونډو يا دژبې دکناري څخه په سهولت سره اداء کيږي . او داشپږ حروف دي چي مجموعه يي ( فرمن لب ) دي .

۱۰، اصمات : اصمات په لغت کي په معني د منع کولو راځي او په اصطلاح کي داصمات حروف دخپل مخرج نه په مضبوطي سره اداء کيږي ددي په اداء کولو کي لږ څه ګراني محسوسيږي او په کومو حروفو کي چي داصفت راځي هغوته حروف مصمته وايي او دمذلقه حروفو څخه سواباقي ټول حروف مصمته دي .

## دصفات غير متضاده تشريح

۱۱، صفير :صفير په لغت کي شپيلی يا دمرغی آواز ته ويل کيږي او په اصطلاح کي دصفيريه حروفو داداء کولو په وخت کي يو تيز آواز دشپيلی غوندي راوځي لکه عزيز او که دا صفت پدي حروفو کي اداء نشي دا حروف بلکل ناقص اداء کيږ ي او داصفت په درى حروفوکي راځي ( ص ، ز ، س ) .

۱۲،قلقله : قلقله په لغت کي جنبش اوحرکت ته وايي او داپنځه حروف دي چه مجموعه يي ( قطب جد ) دي او په اصطلاح کي ددي حروفو داداء کولو په وخت کي په مخرج کي يوقسم ته جنبش وي خودسکون او وقف په حالت کې قلقله زياتيږ ي او دحرکت په حالت کي ډير کم کيږي .

۱۳، لين : لين په لغت کي نرمي ته وايي او په اصطلاح کي دلين دحروفو داداء کولو په وخت کي داحروف ډيرپه نرمي سره اداء کيږي که غواړي چه مد ورباندي وکړي هم کولي شي او دا دوه حروفه دي ( و، ي ) چه کله ساکن وي او ماقبل يي مفتوح وي لکه( خوف) ،( والصيف )

۱٤، انحراف : انحراف په لغت کي اوړيدلواو مائل کيدلوته وايي او په اصطلاح کي د منحرفه حروفو داداء کولو په مختکي اواز دحافه لسان نه نوک ( راس ) لسان طرف ته او دراس لسان نه پشت لسان طرف ته ميلان کوي چنانچه په (ل) کي دحافه نه راس لسان طرف ته او په (ر) کي دراس لسان نه پشت لسان طرف ته ميلان کوي ځکه چي بعضي اوقات دسړي خيال نه وي د ( ل) پرځاي (ر) او د(ر) پرځاي (ل) تلفظ کړي خصوصاً دادماشومانو څخه دارنګه غلطي زيات کيږي او دانحراف صفت په (ل) او (ر) کي راځي او دي دواړو حروفو ته حروف منحرفه وايي .

۱٥، تکرير يا تکرار : تکرير په لغت کي ديو شي بار بار تکرار کولو ته وا يي او په اصطلاح کي دتکرير نه مراد ديو حرف پرځاي څو حرفه اداء کول .

اود تکرار څخه مراد مشابهت دتکرار دي او داصفت صرف په (ر) کي راځي او دحقيقي تکرار څخه ځان ساتل ضروري دي دحقيقي تکرار نه هغه وخت سړي ځان ژغورلي شي چه د (ر) داداء کولو په وخت کي دژبې سر دتالو سره داسي مضبوط ولګي چې لرزه بلکل پکي رانشي په مضبوطوالي کي د

دومره مبالغه هم ونه شي چه آواز پکي بندشي دحروف شديده وو غوندې بلکه په (ر) کې دتوسط صفت خيال وساتل شي .

١٦، تفشي : تفشي په لغت کې انتشار او خورېدلوته وايي او په اصطلاح کي د ( ش) داداء کولو په وخت کې اواز په خوله کې منتشر کيږي لکه ( منفوش ) .

١٧، غنه : دغني څخه مراد هغه آواز دي چې دنون او ميم د اداءکولو په وخت کې په پوزه کې ظاهريږي په هيڅ حالت کې دنون او ميم څخه نه جدا کيږي متحرک وي او که ساکن وي او که پوزه بنده کړي نو داصفت پکي نه اداء کيږي او دې غني ته غنه اني وايي او بل قسم ته يي غنه زماني وايي چه ددي تفصيل به وروسته ان شاء الله په صفات عارضه کې راشي .

١٨، استطالت : استطالت په لغت کې طلب داوږدوالي ته وايي او په اصطلاح کې دا معني لري چې د (ضاد ) داداء کولو په وخت کې دمخرج دشروع نه دمخرج تر اخره پوري اواز په تدريج سره ووځي يعني د نواجذ غاښونو او دژبې د کناري څخه آواز شروع شي په تدريج سره داسي ضواحکو پوري ورسيږي چي په آواز کې يو قسم ته اوږدوالي وي د (ظا ) غوندي د دفتعاً زر ونه وځي دهمدي استطالت له کبله ضاد دظا څخه جدا کيږي نور په ټولو صفاتو کې ضاد او ظا مشترک دي چونکه دضاد مخرج نسبتاً نورو مخارجوته اوږد دي نوپه آواز کې يي هم اوږدوالي دي .

## صفات عرضه

صفات عارضه هغه صفات دي چې کله په حرف کې موندل کيږي او کله نه موندل کيږي لکه څرنګه چې مخکې فصل کې دصفات عارضه و تعريف تفصيلي بيان شو صفات عارضه اجمالاً په لاندي ډول دي .

١، تفخيم ٢، ترقيق ٣، حرکت ٤،سکون ٥، مد ٦، صله ٧،ادغام ٨، اقلاب ٩ ، اخفاء ١٠ ، عنه زماني ١١، تسهيل ١٢، ابدال ١٣ ، حذف .

پورته صفات په دوه ډوله دي (عارض بالصفت ) عارض بالحرف ) عارض بالصفت تفخيم او ترقيق ته وايي او باقي ټول عارض بالحرف دي داعراض بالصفت څخه مطلب دادي چي هغه صف عارضه چي دکوم لازمي صفت دوجهي څخه پيداشوي وي مثلاً مخکي مونږ ولوستل چي د ( خص ضغط قظ )څخه علاوه باقي نور ټول حروف باريک تلفظ کيږي چي تعداد يي (٢٢) ته رسيږي اوس په دي ٢٢ حروفو کې ( الف ، ل ،ر ) دا دري حروف داسي حروف دي چې هميشه باريک نه تلفظ کيږي بلکه په بعضي حالاتو کې باريک تلفظ کيږي او په بعضي حالاتو کې پر تلفظ کيږي په کومو حالاتوکي چې پر تلفظ کيږي په هغي کې صفت استعلاء عارض کيږي چې د هغي وجهي نه دا دري حروف پر تلفظ کيږي

څرنګه چي صفت استعلاء یو لازمي صفت دي نو د ( الف ، ل، ر) په حروفو کي تفخیم صفت عارضه دي چي دیو لازمي صفت دوجهي څخه پیداشوي دي .

او عارض بالحرف څخه مطلب داده چي هغه صفت عارضه چي دیو حرف دیوځاي کیدلو له کبله پیداکیږي مثلاً دنون ساکن او تنوین ادغام یا اقلاب یا اخفاء یا په حروفو مده کي مد فرعي کول ځکه چي دنون ساکن او تنوین ادغام دحرف ( یرملون ) سره دیوځاي کیدلو له کبله کیږئ د (با) سره دیو ځاي کیدلو له کبله اقلاب کیږي او همدارنګه په حروف مده کي مد فرعي دهمزي سره دیوځاي کیدلو له وجهي څخه کیږ ي او که پر دوي باندي زقف یت سکته وشي نو اخفاء ،اقلاب ، ادغام ، مد ،صفات پکي نه موندل کیږي نو ددغي وجهي نه دي صفاتوته صفات عارضه وایي چه کله په حرف کي موندل کیږي او کله نه موندل کیږي .

## شبه مستعلیه

(الف،لام ،را ) دادري واړه حروف ته شبه مستعلیه وایي سره لدي نه چي دحروف مستعلیه دي خو په بعضي حالاتو کي دا حروف پر ( مفخم ) تلفظ کیږ ي دحروف مستعلیه وترمینځ چي مجموعه یي ( خص ضغط قظ ) دي او ددي دري حروفو تر مینځ فرق دادي چي حروف مستعلیه همیشه پر تلفظ کیږي که مفتوح وي یا مضموم یا مکسور و ي یا ساکن وي پدي حروفو کي د استعلا ء صفت لازمي صفت دي چي بالکل ترینه نه جداکیږ ي او په شبه مستعلیه حروفو کي ( ل، ر، الف ) تفخیم لازمي ندي کله پر تلفظ کیږي او کله باریک نو دغي وجهي نه دیته شبه مستعلیه وایي یعني دمستعلیه حروف سره مشابه دي .

اوس به دابیان کړو چي داحروف په کومو حالاتو کي پر تلفظ کیږي او په کومو حالاتوکي باریک تلفظ کیږي هریو به په خپل وارسره بیان کړو .

# څلورم فصل

## تفحیم او ترقیق

## دلام دتفخیم او ترقیق حالتونه

دلام نه مقصد زموږ فقط دلفظ (الله ) دي لام دي نور لامونه ټول باریک تلفظ کیږي صرف دلفظ د (الله ) لام کله پر کله باریک تلفظ کیږي .

لفظ د(الله)اواللهم دري حالتونه لري :

۱،که دلفظ دالله (ج) او اللهم لام څخه ماقبل فتحه وه نو مفخم تلفظ کیږي لکه : هوالله ، مریم ،اللهم .

۲:همدارنګه که دي نه ماقبل ضمه هم وه مفخم تلفظ کیږي لکه : عبدالله ، قالواللهم .

۳، که دلفظ دالله ج او اللهم څخه ماقبل کسره وه باریک تلفظ کیږي لکه : بِسمِ الله ، قلِ اللهم .

د(ر) دتفخيم اوترقيق حالتونه (ر) په شپږو حالتونوکي مفخم لوستل کيږي .

۱، راچي کله مضموم وي يامفتوح وي مشددوي اوکه مخفف وي لکه رَعدًا، رُزِقُوا،دُوْمِرَةٍ ،ففروا .

۲، راچي کله ساکن وي او ماقبل يي مضموم يا مفتوح وي لکه : يُرْزقُوْن، بَرْقُ،ارسلوا .

۳،دراساکن نه ماقبل کسره عارقضی وي لکه :.اِرجعُوْا،ارجعی

٤، دراساکن نه ماقبل کسره اصلي منفصله وي لکه : رَبِ ارجِعُوْن

او کله کسره عارضي هم وي او منفصله هم وي لکه : اَمِ ارتَابُو،ان ارتبتم .

٥،را ساکن وي او ماقبل يي کسره اصلي وي خو مابعديي په يوه کلمه کي دحروف مستعليه و څخه يوحرف راغلي وي لکه : مِر صَاد ، اِرصَاداً،قرطاسً،فرقے ، لبالمرصاد .خوحرف مستعليه به مفتوح وي او که حرف مستعليه د را څخه وروسته په يوه کلمه کي نه وه راغلي بيا را باريک لوستل کيږ ي لکه : فَا صْبِر .؛،صبراً .

٦، را ساکن وي او ماقبل يي هم ساکن وي اوماقبل يي مضموم يا مفتوح وي لکه : اَلْقَدْرَ ،اَلْعُسْرَ،الانهار .خوداصورت صرف وقف پوري خاص دي دوصل په صورت کي دا را متحرک لوستل کيږي .

## درا دترقيق حالتونه

را په پنځه حالتونوکي مرقق يعني باريک لوستل کيږي .

۱، رامکسوره مشدد وي او که مخفف و ي لکه ( رِزقٍ ، بِالبِرِ،رجالُ )

۲، را ساکن وي او ماقبل يي کسره اصلي متصله وي او مابعد يي حرف مستعليه نه وي لکه ( فِرعَون ، شِرعَۃً ،مريے )

۳، راساکن وي او ماقبل يي هم ساکن وي او ماقبل يي مکسوروي لکه لِذِي حِجْر، وَلابِكْر) خودادوقف په حالت کي وي .

٤، راساکن وي او ماقبل يي ياي ساکنه وي لکه ( خَير ،قَدِير )

٥، راي مماله يعني هغه را چي اماله پکي شوي وي لکه ( مَجرِهَا ) اماله په ټول قران کريم کي صرف يوځاي راغلي په روايت حفص (رح) کي (اختلافي ځايونه )

په قران کريم کي دري داسي کلمات دي چي په هغي کي اختلاف دي يعني درا په هکله چي باريک تلفظ کيږي که پر تلفظ کيږي .

۱، يولفظ (مِصرَ) دي ۲، بل لفظ ( فِرقٍ ) ۳، دريم لفظ ( عَينَ الْقِطْرِ ) دي بعضي وايي باريک تلفظ كيږي او بعضي وايي چي پر تلفظ كيږي خو په لفظ د مصراوعين القطردوقف په حالت كي اختلاف دي او دوصل په حالت كي لفظ مصر كي را مفتوح ده پر تلفظ كيږي او عين القطر كي را مكسوره ده باريک تلفظ كيږي او په لفظ دفرق كي په وصل او وقف دواړو كي اختلاف دي . خلاصه دا چي په پورتني دري كلماتوكي چي كوم را راغلي پدي كي تفخيم او ترقيق دواړه جائز دي .

## دالف تفخيم او ترقيق

كه چيرته دالف څخه مخكي حرف استعلاء راغلي وي نو الف هم ورسره مفخم تلفظ كيږي ځكه چي حروف استعلا ء ټول مفخم لوستل كيږي لكه :

(صَالِحِين ) خَالِدُون ) او همدارنګه په لفظ دالله او اللهم كي هم الف مفخم لوستل كيږي او كه دالف څخه ماقبل حرف باريک اوستل كيده نوالف هم ورسره باريک لوستل كيږي لكه : نَاصِرِينَ .

دحروفو دتفخيم مراتب

دټولو څخه زيات لفظ دالله مفخم لوستل كيږي بيا وروسته ورپسي طا ، بيا صاد ،بياضاد، بيا ظا ،بيا قاف ورپسي غين ورپسي خا او بيا را همدارنګه دالف تفخيم هم دخپل دماقبل حرف په لحاظ دي يعني څومره چي ماقبل حرف يي مفخم وي همدومره الف هم ورسره مفخم لوستل كيږي .

## پنځم فصل

## په بيان د اظهار ، ادغام ، اقلاب او اخفاء كي

په دي فصل كي دنون ساكن او تنوين احكام بيانوو .

نون ساكن اوتنوين څلور احكامه لري . اظهار ، ادغام ، اخفا ء ، اقلاب

۱، اظهار : اظهار په لغت كي ښكاره كولو ته وايي .

او په اصطلاح كي بغير دغني څخه يو حرف دخپل مخرج نه اداء كول .

كله چي دنون ساكن اوتنوين څخه وروسته حروف حلقي راشي په دي كي اظهار كيږي يعني بغير دغني څخه اداءكيږي . لكه : مِن خَوف ، مَن امَنَ او دي اظهار ته اظهار حلقي يا اظهار حقيقي وايي

۲،ادغام : ادغام په لغت كي (ادخال شيء في الشيء ) يعني يو شي په بل شي كي داخلول او په اصطلاح كي ساكن حرف دمتحرک حرف سره داسي يو ځاي لوستل چي يو مشدد حرف ورڅخه جوړشي .

دنون ساكن او تنوين څخه وروسته يي په بله كلمه كي حرف (ير ملون ) راشي چي ټول شپږ حروف دي نو په نون ساكن او تنوين كي ادغام كيږي لكه : مِنْ وّ َال ، من الّدُنهُ خو په څلورو حروفو كي ادغام مع الغنه كيږ ي چي مجموعه يي (يمنو ) دي او په دوو حروفو كي چي مجموعه يي ( لر) دي ادغام بغير الغنه كيږي يعني په يمنو كي ادغام ناقص كيږ ي او په لر كي ادغام تام كيږي .

داغام ناقص او ادغام تام تفصيل به وروسته ان شاء الله راشي .

اوكچيري دنون ساكن څخه وروسته حروف يرملون په يوه كلمه كي راشي بيا ادغام نه كيږي لكه : صِنْوَن ٍ ، قِنْوانُ  په قران كريم كي صرف همدغه څلور كلمي راغلي پدي كي اظهار كيږي او دي اظهار ته اظهار مطلق وايي .

٣، اقلاب : اقلاب په لغت كي داسي معني كيږي ( تحويل الشيءٍ عن وجهه ) يعني يو شي دخپل حقيقت څخه رااړول او په اصطلاح كي دنون ساكن او تنوين څخه وروسته چه (با ) راشي په نون ساكن او تنوين كي اقلاب كيږي دغني سره يعني نون ساكن او تنوين په ميم بدليږي لكه : مِن بَعْدسَمِعُ ٌ بَصِ ٌر .

٤، اخفاء : اخفاء په لغت كي ستر يعني پټولوته وايي .

او په اصطلاح كي داظهار او ادغام ترمينځ يو ساكن حرف اداء كول يعني دنون ساكن او تنوين څخه وروسته چي حروف يرملون او حروف حلق او با څخه علاوه هر يو حرف چي راشي په نون ساكن او تنويي كي اخفاءمع الغنه  كيږي.لكه : اَنفُسَكُم . اَنْتُم  ، مِن قَبْل ،  او داخفاء ټول (١٥)حروف دي او دي اخفاء ته اخفاء حقيقي وايي .

## دميم ساكن احكام

ميم ساكن دري احكام لري . ادغام ، اخفاء ، اظهار

١، ادغام : دمنم ساكن څخه وروسته چي بل ميم راشي پدي كي ادغام مع الغنه كيږي لكه : اِلَيْكُمْ مُرْسَلُوْن .....

٢، اخفاء : دميم ساكن څخه وروسته چي با راشي په ميم ساكن كي اخفاء مع الغنه كيږي لكه : وَمَهُم ْ بِمُؤْمِنِيْن  او دي اخفاء ته اخفا ء شفوي وايي .

٣، اظهار : دميم ساكن څخه وروسته چي دميم او با څخه علاوه هريو حرف راشي په ميم ساكن كي اظهار كيږي او دي اظهارته اظهار شفوي وايي لكه : فَلَهُم ْ اَجْرُهُمْ

## دلام تعريف احكام

دلام تعريف دوه احكامه دي  اظهار  او ادغام

۱، الف دلام تعریف څخه وروسته نشي راتلاي په ۲۸ حروفو کي د ۱٤ حروفو څخه مخکي چي لام تعریف راشي په لام تعریف کي اظهار کیږي او په ۱٤ جروفو کي ادغام کیږي په هغه حروفو کي چي اظهار کیږي مجموعه یي ( ابغ حجک وخف عقیمه ) دي لکه : اَلْبُخْلِ ،القارعه ، الکوثر ، ددي نه سوا په ۱٤ نورو خروفو کي ادغام کیږي لکه : اَلشَمس ،التوبه ، الرحمن ، دي اظهار ته اظهار قمري وایي او دي ادغام ته ادغام شمسي وایي .

## شپږم فصل دغني په بیان کي

دغني معني مخکي هم تیره شوه دخیشوم نه چي کوم آواز وځي هغي ته غنه وایي غنه په دوه قسمه ده ( غنه آني ) او ( غنه زماني ) غنه آني وي او که غنه زماني وي داصرف په میم او نون پوريٍ خاصه ده غنه زماني په نون او میم کي په بعضي حالاتوکي راځي لکه څرنګه چي مخکي دنون ساکن اومیم ساکن احکام تیر شول .

غنه آني : دنون او میم لپاره صفت لازمي دي په هر حال کي پکي موندل کیږي که وغواړي او که ونه غواړي داصفت بلا ارادي اداء کیږي .

غنه زماني : د ارادې څخه بغیر نه اداء کیږي او دا غنه لاندي په نون او میم کي موندل کیږي :

۱، نون ساکن او تنوین څخه وروسته دحروف حلقي او لام او را نه علاوه باقي ۲۰ شلو حروفو کي کوم یو حرف چي راشي هلته غنه کیږي .

۲، دمیم ساکن نه وروسته چي میم یا باراشي (میم مخفاے او میم مدغمه کي )

۳، نون او میم چي کوم ځاي کي مشدد راشي فقط چي همد دري حالاتو کي غنه کیږي او دغني مقدار یو الف دي یعني دیو الف په اندازه د غنه وشي دیو الف اندازه داده چي خلاصه ګوته بنده کړي یا بنده ګوته خلاصه کړي .

## اووم فصل په بیان کي د مد

مد په لغت کي اږدولو او کش کولو ته وایي .

او په اصطلاح کي په حروف مده او حروف لین باني د آواز اوږدول دي .

حروف مده دري دي ( الف ،واو ، یا ) کله چي ساکن وي او ماقبل حرکت یي دخپل جنس څخه وي لکه : قَاْلَ ،قَاْلُو ، قِیْلَ او حروف لین دوه دي ( واو ، یا ) چي ساکن وي او ماقبل یي مفتوح وي لکه : مِنْ خَوْف ، وَالصَیف

اول مد په دوه قسمه دي ( مد اصلي ) او ( مدفرعي )

۱،مد اصلي :مد اصلي هغه مد ته وايي چي کوم سبب باندي موقوف نه وي حروف مده چه اداء کوي نو هغه خپله ورسه اداء کيږي لکه : : قَاْلَ ،قَاْلُو ، قِيْلَ

که چيري پدي کلماتوکي مد ونه شي نو دحرف ذات باقي نه پاتي کيږي او همدارنګه مد اصلي کوم سبب باني هم موقوف ندي .

۲،اومد فرعي : هغه مد ته وايي چي کوم سبب باندي موقوف وي کچيري مد فرعي اداء نشي دحرف ذات ورسره نه ختميږي بلکه د کلمي چي کوم زينت او حسن دي هغه ورسره له مينځه ځي لکه سُوءَ ، قَاْلُو ، اَمَنَا .

دمد اسباب

مد اصلي خوصرف محل مد ته ضرورت لري . مد فرعي لپاره د دوه شيانو وجود ضروري دي ( محل مد ) او ( سبب مد ) محل مد هم دوه شيان دي (حرف مده ) او ( حرف لين )

او سبب هم دوه شيان دي : همزه او سکون لکه : والسماء پدي کي سبب دمد همزه ده او په ربِ العلمين کي سبب مد سکون دي .

دمد اسباب دوه دي همزه او سکون ددي دواړو دوه دوه اقسام دي ( همزه متصل ) او همزه منفصل ) . (سکون لازم ) او (سکون عارض ) .

مدفرعي اجمالاً په څلور قسمه دي ( مد واجب ) ۲ ( مدجائز ) ۳ ( مدلازم ) ٤ (مد عارض ) مد واجب ته مد متصل هم وايي او مد جائز ته مد منفصل هم وايي . مد فرعي تفصيلاً په (۹) قسمه دي چه په لاندي ډول دي :

۱، مد متصل (۲) مد منفصل (۳) مد لازم کلمي مثقل (٤) مد لازم مخفف (٥) مد لازم حرفي مثقل ( ٦ ) مد لازم حرفي مخفف (۷) مد لازم لين (۸) مد عارض لين ( ۹ ) مد عارض وقفي .

۱، مد متصل : هغه مد ته وايي چي دحرف مده څخه وروسته همزه په يوه کلمه کي راغلي وي لکه : سَوَاءً ، سُوْءَ .

۲، مد منفصل : هغه مدته وايي چي دحرف مده څخه وروسته همزه په جدا کلمه کي راغلي وي لکه : قَاْلُوا ، اَمَنَا ،فِاَنْفُسِکُم .دي مدته منفصل ځکه وايي چه همزه په جدا کلمه کي راغلي او جايزځکه ورته وايي په بعضي رواياتوکي راغلي اوبغضي رواياتوکي ندي راغلي او بله خبره داده چي دا مد صرف د وصل په حالت کي کيږي که مخکي کلمي باندي وقف وشي بيا دا مد نه کيږي او مد متصل په وصل او وقف دواړوحالاتوکي کيږي ددي ادواړو مدونو سبب همزه ده او دنورو مدونو سبب سکون دي .

۳، مد لازم کلمي مثقل : هغه مد ته وايي چه دحرف مد څخه وروسته په يوه کلمه کي مشدد حرف راغلي وي لکه : اَلطَامَے ، دَابَے ،الصَاخَةَ

دلته سبب مد سکون دي کوم مشدد حرف چه دحرف مد څخه وروسته راغلي په حقيقت کي دا دوه حرفه دي اول ساکن اودوهم متحرک اول په دوهم کي مدغم شوي دي .

٤، مدلازم کلمي مخفف : هغه مد ته وايي چي په يوه کلمه کي دحرف مد څخه وروسته يو لازمي سکون راغلي وي لکه : آلئَنَ او دامد په ټول قران کريم کي صرف په همدغه يوه کلمه کي راغلي دي دلازمي سکون څخه مقصد دادي چي په هرحال کي ساکن وي يعني دوصل او وقف په دواړو حالتونو کي ساکن دي .

دمدلازم حرفي صرف په حروف مقطعات کي راځي .

٥،مدلازم حرفي مثقل :هغه مدته وايي چي په حروف مقطعاتو کي دحرف مده څخه وروسته مشدد حرف راغلي وي لکه : (الم ) کي اول مد مراد دي دلته  هم دحرف مد څخه وروسته مشدد حرف راغلي خو مشدد حرف په اصل کي دوه حرفه دي او ل شاکن دوهم متحرک اول په دوهم کي مدغم شوي د مد سبب دغه ساکن حرف دي .

٦، مد لازم حرفي مخفف : هغه مد ته وايي چي په حروف مقطعاتوکي د حرف مد څخه وروسته سکون راغلي وي لکه : حم ، ق ، ص ) ،

٧، مد لازم لين : هغه مد ته وايي چي په حروف مقطعات کيدحرف لين څخه وروسته سکون راغلي وي او دا مدپه ټول قران کريم کي په يوه کلمه کي دوه ځايه راغلي چي هغه عين دي ، په سورے مريم او سورے شورا کي مثال : ( کهيعص ) حم عسق )

٨، مد عارض لين : هغه مد ته وايي چي دحرف لين څخه وروسته سکون عارضي راغلي وي يعني دوقف په سبب ساکن شوي وي لکه : ( مِن خَوُف وَالصَيْف )

٩، مد عارض وقفي : هغه مد ته وايي چي دحرف مده څخه وروسته سکون عارضي راغلي وي لکه : ( يَومِ الدِيْنِ ، نَسْتَعِيْنُ )

## دمدونو مقدار

مداصلي کي صرف قصر کيږي او دقصر اندازه يو الف دي ددي څخه زياد اوږدول جائز ندي او مد فرعي مختلف قسمونه لري نو دهغي مقدار  هم مختلف دي چي تفصيل يي په لاندي ډول دي :

مد متصل اومد منفصل کي يوسط کيږي په توسط کي هم دري اقواله دي  ( دوه الفه ، دوه نيم الفه ، څلور الفه )

اومدمنفصل کي قصر  هم کيږي خو په طريقه دجزري (رح) کي فقط دمد لازم په اولني څلور قسمونوکي صرف طول کيږي دطول مقدار دري الفه يا پنځه الفه دي .

په مدلازم لين ، مدعارض وقفي اومدعارض لين کي طول توسط ،قصر دري واړه جايز دي مد لازم لين او مد عارض وقفي کي اول طول بهتر دي بيا توسط ، بيا قصر او په مد عارض لين کي ددي برعکس او

ل قصر بهتر بیا توسط بیا طول بهتر دي خو دلته دتوسط مقدار دوه الفه یا دري الفه دي مد متصل غوندي ځلور الفي توسط جایز ندي کومو مدونوکي چه طول ،قصر دري واړه جایز دي ددي دري واړو ځخه به یواختیاروي یاطول یا توسط یا قصر دتلاوت په شروع کي چه کوم قول مو اختیارکړو دتلاوت ترآخره پوري به په هغي عمل کوي مثلاً طول مو اختیار کړو آخره پوري به طول باندي عمل کوي داسي نشي چي مثلاً یو ځاي مو دوه الفي توسط وکړو بل ځاي کي دري الفي توسط وکړي بلکه آخره پوي به همغه دوه الفي توسط باندي عمل کوي همدارنګه مد منفصل ته په مد متصل باندي ترجیع ورکړو ځکه چي مدمنفصل ضعیف دي او مد متصل قوي  دي او  همدارنګه مد عارض لین ته په مد عارض وقفي ترجیع ورنکړو مثلاً په مدعارض وقفي کي موتوسط وکړو او په مد عارض لین کي مو طول وکړو داجایز ندي یا به په دواړو کي مساوات کوي یابه مد عارض وقفي ته په مدعارض لین ترجیع نه ورکوي چي مد عارض وقغي کي طول او مد عارض لین کي توسط وشي .

## اتم فصل هاي ضمیر

دهاي ضمیر ځخه مراد دواحد مذکر غایب ضمیر دي کله چي داسم فعل یا حرف پوي متصل شي لکه : (رَسُولُهُ بِهِ اَكَلَهُ ) دهاي ضمیر ځلور قاعدي دي دوه ددي دحرکت په هکله دي او دوه یي دصله یا عدم صله په هکله دي (١) که چیري دهاي ضمیر ځخه مخکي کسره وه یا یاي ساکنه وه نو  هاي ضمیر مکسور لوستل کیږي لکه : بِهِ اِلَيْهِ مګر ددي قاعدي ځخه ځلور کلمات مستثني دي چي دوه کلموکي مضموم لوستل کیږي او دوه کلمو کي ساکن لوستل کیږي سره لدي چي ماقبل یي مکسوردي په کومو کلماتو کي چي  مضموم لوستل کیږي هغه دادي  ( وَمَا اَنْسَنِيْهُ ، سورے کهف کي او عَلَيْهُ اللهَ سورے فتح کي او کومو کي چي ساکن لوستل کیږي هغه دادي ( اَرْجِه ، دوه ځایه سورے اعراف کي او فَاَلْقِه سورے نمل کي .

٢، که دهاي ضمیر ځخه ماقبل نه کسره وه او نه یاي ساکنه وه نو هاي ضمیر مضموم لوستل کیږي لکه : ( اَخَه ، رَاٰءَ نْتُمُوْهُ ) مګر دقاعدي ځخه یو ه کلمه مستثني ده چه په هغه کي مکسور لوستل کیږي ، وَتَقَهِ سورے نور کي پدي ها  باندي همدغه دوه حرکته راځي یعني کسره او ضمه فتحه ورباني نه راځي لاندي دوه قاعدي دصلي او عدم صلي په هکله دي :

٣، که چیري دهاي ضمیر نه ماقبل او مابعددواړه متحرک وو نو ها ضمیر کي صله کیږي که ماقبل یي مضموم وه نو صله د واو سره کیږي او که ماقبل یي مکسور وو نو صله دیا سره کیږي لکه : اَمْرُ اِلَي اللهِ بِوجْهِهِ سُوْءَالْعَذَابِ  مګر یو کلمه ددي قاعدي ځخه مستثني ده چه هغه  یَرْضَهُ لَكُمْ  سورے زمر کي دي سره ددي نه چه ماقبل او مابعدیي دواړه متحرک دي بیاهم صله نه کیږي .

٤، که دهاي ضمیر ماقبل او مابعد دواړه ساکن وو یا ماقبل فقط ساکن وو یا مابعد یي فقط ساکن وو نو پدي دري صورتونو کي په هاي ضمیر کي صله نه کیږي مثالونه یي لاندي ذکر دي ( مِنْهُ الْمَا ء ، مِنْهُ اَيَتُ ُ ) مګر په یوه کلمه کي ( فِيْهِ مُهَاناً )ددي قاعدي ځخه مستثني ده سره لدي چه ماقبل یي ساکن دي خو بیاهم صله کیږي صله دي ته وایي چه حرکت اوږد اداء کړل شي که حرکت ضمه وه دومره یي اوږد کړي چه وروسته ورنه  واو ساکن جوړ شي او همدارنګه که حرکت یي کسره وه نو دومره یي اوږد کړي

چه يا ساکن تر جوړه شي او صله دوقف په صورت کي نه پيداکيږي بلکي دوصل په صورت کي کيږي .

لاندي کلماتوکي صله نه کيږي ځکه چه پدي کليماتوکي ها دنفس کليمي څخه د مَانُفْقَهُ سورے هود لَئِن لَم تَنْتَهِ دوه ځايه سورے شعراء کي او يو ځاي سورے مريم کي لَئِن لَم تَنْتَهِ

سورے علق کي فواکه سورے مومنون لاندي يو ځوکليمات دي چه صورتً دهاي ضمير غوندي دي خو په اصل کي ها ضمير ندي بلکي دي ته هاي سکته وايي او دا هميشه ساکن دي هغه کلمات دادي : لَمْ يَتَسَنَهُ ، سورے البقره کي اِقْتَدِهُ ، په سورے انعام کي كِتَابِيَهُ دوه په سورے احاقه کي او همدارنګه يو ځاي مَالِيَه ُ راغلي دي سُلْطَنِيَهُ يو ځاي په سورے الحاقه کي او دوه ځايه حِسَابَهُ په سورت الحاقه کي مَاهِيَهُ په سورے القارعه کي چه داټول کليمات دي نهه ځايه راغلي دي

## نهم فصل

### په بيان دادغام کي

ادغام په لغت کي ادخال شيء في الشي ته ويل کيږي يعني يو شي په بل شي کي ننوستل او په اصطلاح کي دوه حروفونه په داسي ډول يو ځاي کول او لوستل چه يو مشدد حرف ورڅخه جوړشي .

سبب او مخرج په اعتبار سره ادغام په دري قسمه دي . (ادغام مثلين ) (ادغام متجانسين ) ( ادغام متقاربين )

ادغام مثلين : ديته وايي چه دوهم مثل حروف يو په بل کي مدغم شي لکه : اذهب بکتابي .

ادغام متجانسين : ديته وايي چي ديو مخرج حروف يو په بل کي مدغم شي لکه :اذظلموا .

ادغام متقاربين : ديته وايي چه دوه قيب المخرج حروف يوپه بل کي مدغم شي لکه : من ربه .

دمدغم په اعتبار سره ادغام په دوه قسمه دي (ادغام صغير ) ادغام کبير )

ادغام صغير ديته وايي چه مدغم حرف ساکن وي يعني دساکن حرف په متحرک حرف کي ادغام کيدل لکه : ( اليکم مرسلون )

ادغام کبير ديته وايي چي مدغم حرف متحرک وي يعني مدغم او مدغم فيه دواړه متحرک وي امام حفص رحمه الله عليه درروايت مطابق ددي ادغام په ټول قرانکريم کي صرف پنځه مثالونه موندل کيږي .( اتحاجوني ) (تامروني ) (لاتامنا ) ( نعما ) ( مکني )

د اداء اوکيفيت په اعتبار سره ادغام په دوه قسمه دي ( ادغام تام ) او ( ادغام ناقص )

ادغام تام هغه ادغام ته وايي چي دمدغم حرف هيڅ يو صفت باقي پاتي نشي لکه : مِنْ لَّدُنه ، مِنْ رَّبِهِ .

ادغام ناقص :هغه ادغام ته ويل کيږي چه دمدغم حرف کوم صفت باقي پاتي شي لکه : مِنْ وَالٍ

دحکم په اعتبار سره ادغام په دوه قسمه دي ( ادغام واجب ) او ( ادغام جائز )

په مثلين او متجانسين حروفو کي ادغام واجب دي اومتقاربين حروفوکي ادغام جايز دي ادغام مثلين کي صرف ادغام تام کيږي او ددي ادغام ١٤ صورتونه په قرانکريم کي موندل کيږي .

١،دبا ادغام په با کي لکه ( اذهب بکتابي )

٢، دتا ادغام په تا کي لکه ( فماربحت تجارتهم )

٣، ددال ادغام په دال کي لکه : ( قددخلوا )

٤، دعين ادغام په عين کي لکه : ( تسطع عليه )

٥، درا ادغام په را کي لکه ک ( وذکرربک )

٦، دفاادغام په فا کي لکه : ( فلايسرف في القتل )

٧، دکاف ادغام په کاف کي لکه : ( يدرک کم الموت )

٨،دلام ادغام په لام کي لکه : ( کلابل لاتکرمون )

٩، دميم ادغام په ميم کي لکه : ( اليکم مرسلون )

١٠، دنون ادغام په نون کي لکه : ( من نشاء )

١١، دواو ادغام په واو کي لکه : ( عصوو )

١٢، دها ادغام په ها کي لکه : ( يوجهه )

١٣، ديا ادغام په يا کي لکه : ( لدي المرسلون

١٤، دذال ادغام په ذال کي لکه : ( اذذهب )

دادغام متجانسين ټول ٧ صورتونه په قرانکريم کي راغلي دي چه شپږوکي تام ادغام کيږ ي او يو صورت کي ناقص ادغام کيږي په کوموصورتونوکي چي ادغام تام کيږي هغه په لاندي ډول دي :

١، دتاادغام په دال کي لکه : ( اثقلت دعوالله )

٢، دتا ادغام په طا کي لکه : ( وقالت طايفے )

٣، ددال ادغام په تا کي لکه : ( قدتبين )

٤، دذال ادغام په ظا کي لکه : ( اذظلموا )

٥، دثاادغام په ذال کي لکه : ( يلهث ذالک )

٦، دبا ادغام په ميم کي لکه : ( ارکب معنا )

او په لاندي يو صورت کي ادغام ناقص کيږي

٧، دطا ادغام په تا کي لکه : ( بسطت ، فرطت ، فرطتم ، احطت ) داغام متقاربين چه لام تعريف په حروف شمسيه کي ادغام هم ورسره حساب کړي ټول ٨ صورتونه په قرانکريم کي موندل کيږي خو په ځلوصروتونو کي تام ادغام کيږي په دوه صورتونوکي ادغام ناقص کيږي او په يوصورت کي ادغام اختلافي کيږي او په يو صورت کي ادغام اختياري کيږي . په لاندي صورتونوکي تام ادغام کيږي .

١، دلام تعريف ادغام په حروف شمسيه کي لکه : ( الشمس )

٢، دنون ساکن او تنوين ادغام په لام کي لکه : ( من ادنه ، هدًي لبني اسرائيل )

٣، دنون ساکن او تنوين ادغام په را کي لکه :( من ربه ، من ثمرے رزقاً )

٤، دلام ادغام په راکي لکه : ( قل ربِ )

٥،دنون ساکن او تنوين ادغام په واو کي لکه : ( من وال ، مغفرے ورحمے )

٦، دنون ساکن او تنوين ادغام په يا کي لکه : ( من يقول ، نومئذٍ يَوَدُ )

٧، دنون ساکن او تنوين ادغام په ميم کي لکه : ( من ماءٍ مهينٍ ، دا ادغام اختلافي دي بعضي وايي چي دا غنه دنون دي او بعضي وايي چه داغنه دميم دي .

٨، الم نخلقکم کي دکاف ادغام په کاف کي اختياري دي يعني ادغام تام او ادغام ناقص دواړه جائز دي خو ادغام تام بهتر دي .

## داغام موانع

دمثلين لپاره د ادغام مونع :

کله چي دوه هم مثله حروف سره جمع شي اول ساکن دوهم متحرک نو ادغام کول واجب دي مگر حروف مده خپل هم مثله کي ادغام نه کيږي لکه : في يوم ، الذي يوسوس ، ان الذين امنواوعملوا الصاحات ځکه چي دلته ثقل پيداکړي او ادغام دثقل لري کولو لپاره کيږي او بله وجه داده چي ادغام قريب المخرج حروفو کي کيږي دا دواړه حروف خپلوکي بعيدالمحرج دي ځکه اول حرف مده دي او دوهم متحرک دي او دريمه وجه داده چي که چيري ادغام وشي نو دحروف مده مديت به ختم شي يعني دمثلين لپاره د ادغام موانع داده چي اول حرف به مده نه وي متجانسين لپاره لپاره د ادغام موانع په لاندي ډول دي :

كله چي دوه هم جنسه حروف جمع شي او ل ساكن دوهم متحرک نو ادغام واجب دي مگر حروف حلقي پخپل هم جنس كي ادغام نه كيږي لكه : فاصفح عنهم ، ځكه چي ثقل پيداكيږي متقارب لپاره دادغام موانع په لاندي ډول دي دلاه هم دمخكي غوندي حروف حلقي پخپل متقارب كي ادغام نه كيږي لكه : فسبحه . همدارنګه حروف حلقي په غير حلقي كي هم ادغام نه كيږي لكه : لاتزغ قلوبنا . او همدارنګه دلام هل او لام بل او لام فعل ادغام په نون كي نه كيږي لكه : هل ندلكم ، قلنا ، بل نقدف ، بلحق علي الباطل .

## لسم فصل اجتماع ساكنين

اجتماع ساكنين څڅه مقصد د دوو ساكن حروفو جمع كيدل دي او دا په دوه قسمه دي ( علي حده ) او ( علي غيرحده )

١، اجتماع ساكنين علي حده ديته وايي چه دوه ساكن حروف سره جمع شي پداسي شان چه او حرف يي مده وي او دواړه په يوه كلمه كي وي لكه : الئن ، دابے ددي حكم دادي چي اول ساكن پخپل حال پاتي كيږي هيڅ تغير پكي نه راځي دوقف او وصل په دواړو حالتونوكي يوشانتي لوستل كيږي .

٢، اجتماع ساكنين علي غيرحده :

ديته وايي چه دعلي حده د دوو شرطو څخه يو يا دواړه شرطونه پكي موجود نه وي چه ددي دري صورتونه جوړيږي .

١، دواړه ساكن حروف په يوه كلمه ګي وي خو اول ساكن حرف مده نه وي لكه : القدرالعسر وغيره ددي حكم دادي چه دوقف په حالت كي دواړه ساكن حروف په حال باقي پاتي كيږي او په وصل كي دوهم ساكن باندي كسره راځي او داجتماع ساكنين صرف دوقف په حالت وي .

٢، دمخكني صورت برعكس يعني اول ساكن حرف وي خودواړه په يوه كلمه كي نه وي لكه : قالا الحمد ، في الارض ، قالوا الئن ، دا په اصل كي په قالاالحمد ، في الارض ، قالوا الئن وو .

ددي حكه دادي چه په لوستلوكي اول ساكن حرف حذف كيږي اوكه وقفورباندي وشي بيا په خپل حال پاتي كيږئ ځكه چه بيا اجتماع ساكنين صورت نه نيسي .

٣،دريم قسم دادي چي اواړه شرطونه موجودنه وي يعني اول ساكن نه حرف مده وي او نه په يوه كلمه كي وي لكه :قل الحق ، قل الحمد ، قديرالذي ، ددي حكم دادي چي دو باندي ضمه راځي او دوو باندي فتحه راځي په كومو باندي چي ضمه راځي هغه دادي ( چه اول ساكن ميم جمع وي لكه : انتم العلون عليكم الصيام ) ٢ ( چه اول ساكن هغه واو لين نوي چه دجمع لپاره وي لكه دعوالله رءو العذاب ، چه په لصل كي دعو او رء و وو او په كومو باندي چه فتحه رځي دادي ١( چه اول ساكن د من جاره نون وي لكه : من الناس ، من الله ، ٢( چه اول ساكن د الم ميم وي چه دسورت ال عمران په سركي راغلي كلچه لفظ الله سره وصل شي لكه : الم الله

## دترتيل دوهم جزء معرفے الوقوف